# فهرست

# د کتاب لوستونکي ته

نوي تازه سپاهيان ور استومه د مينې د ملك
چې په حرم کښې ويره ده د بغاوت د عقل

زمانه هيڅ په حقيقت د دې خبر نه شوله
جنون قبا ده برابر ده په قامت د عقل

تر داسي ځای ورسېدم چې مي تر غېږه کړله
زما د بام و در طواف دی سعادت د عقل

دا خيال ونه کړې چې د عقل تول او تله نشته
د مسلمان بنده نظر دی قيامت د عقل

## تمهيد

پيرِ روم زما مرشد روشن ضمير
د مستۍ د محبت د کاروان مير
ځای يې پورته له سپوږمۍ او له آفتاب

کهکشان يې د ضمير راکښو طناب
د قرآن نور يې په منځ کښې د سينې
جامِ جم يې شرمنده له آئينې
يو نغمې د هغه پاك ذات د شپېلۍ
بيا زما خاورې کښې ګډې کړې غلۍ
وې چې روح بيا په رازونو خبردار شو
لمرخاته له درانه خوبه را بيدار شو
ورته يې ورکړې نوې۔ نوې ولولې
ترې يې پرې کړې د ګلونو زولنې
يو ته پوه يې په رازونو د يورپ
نور تېنګ نه شو په اورونو د يورپ
د خليلυ په شانې مست اوسه پکښې
تار په تار کړه د عمرونو بتخانې
اصل ژوند دی د امت جذبِ درون
کم نظره ورته نوم بردي د جنون
هيڅ يو قام د دې شينکي آسمان د لاندې
نه دی لاړ بې ليونتوبه مه په وړاندې
په کلك نيت او په توکل مومن قاهر دی
که دا دواړه پکښې نه وي نو کافر دی

دا مومن شي بېلولای خير و شر
له نظره يې عالم زېر و زبر
له ګوزاره يې رېزي- رېزي کمر
په ګرېوان کښې يې هزار رنګه محشر
چې دي جام يوورو زما له ميخانې
بيا دي نوې کړې وخت تېرې تماشې
په چمن لکه بوی اوسه پټ څرګند
په رنګونو کښې له رنګه بې پيوند
دي تا دور د روح په راز نه دی آګاه
دين يې څه دی بې له حبِ غيرالله
فلسفي په دې نکتو کله پوهيږي
خيال يې تش له آب وګله را تاويږي
سترګې يې نه کړلې رڼا په نور د زړه
نور څه نه ويني خو زېر او شنه او سره
ښه هغه چې نه کړي زړه په چا پيرزو
ځولنې له غيرالله لر کړي له ښنو
د زمرو په راز به څه پوهيږي غوا
بې زمرو بل چا ته مه کړه دا وينا
د کم ذاته سره څښلې نه شي مي

که باچا شي د فارس او روم د ري
که يوسف زموږ د پړانګ د پنجو ښکار شي
له دې ښه دى چي ناکس يې خريدار شي
د دنيا خل-ګ بې فکره بې بېلتونه
اطلس نه پېژني بيه کړي ټاټونه
د عجم د شاعر څه ښکلې وينا ده
چي لمبه يې له تاثيره تن کښې سا ده
"د دنيا خلګو ته چيغې د عاشق وي
لکه بانګ د فيرنګيانو په وطن کښې
بيا څه ووايه له دين له سياسته
بيا څرګند بيان کړه دا دواړه حکمته
غم خوره، مه خوره د غم کارو خلګو نان
غم هوشيار خوري او شکرې ماشومان

((رومي))

په فقير باندي وي بار خپله قبا
بل څه مه وړه بې خوشبوى لکه صبا
ته قلزم يې؟ سر په دشت و در وهه
ته شبنم يې؟ ځان تر ګلو رسوه
راز د حق د اهلِ حقو نه پټ نه دى

د مومن په روح خبر يې چې دا څه دی؟
ځاځكې پرخه چې په مينه د افشا
خپله غوټه يې په خپله كړله وا
د آسمان له خلوتونو را بهر شوه
د خودۍ نه په خپل زړه ور برابر شوه
مخ يې نه كړو د سيندونو په طرف
ځان يې ورك نه كړو لمن كښې د صدف
د سحر غېږ كښې پرته يو لحظګۍ
بيا ور وڅڅېده زړه كښې د غوټۍ

%%%

## لمرته خطاب

اې باچا د لمرخاته مهر منيره!
شوه له تا هره ذره روشن ضميره
دا جهان سوز و سرود مومي له تا
هر يو پټ ته وركوې خوند د افشا
د كليمυ له لاسه زياته ځلقنده
ستا د سرو كشتۍ د سپينو په چينه

ستا شغلو سپينې سپوږمۍ ته رڼا ورکړه
او د کاڼي زړه کښې يې لال ته ځلقا ورکړه
د لاله داغ د سينې ستا برکت دی
هم يې وينه کښې څپې ستا برکت دی
نرګس سل پردې کړي څيري را بهر شي
چې د تا د پلوشو نه بهره ور شي
په خير راغلې توره شپه دي کړه صبا
هر ونه دي کړه ونه د سينا
ته رڼا يې د سحر زه نيمه شپه
په دې زړه کښې مه کړه بله يو ډيوه
په خپل نور مي توره خاوره کړه رڼا
په جلوه کښې مي در ونغاړه صفا
چې د شرق د فکر توره شپه صبا کړم
د آزادو د سينو تياره رڼا کړم
دا کچه، پاخه په تاؤ د خپل کلام کړم
او آشنا نوی ګردش ځنې ايام کړم
د مشرق فکر آزاد کړم له فيرنګ
او زما له نغمو واخلي آب و رن-ګ
ژوند ساتلی شي د ذکر په ګرمۍ

آزادي راځي د فکر په پاکۍ
چې خراب د يو قام فکر اندېشه شي
کره زر يې په لاسونو کښې کوټه شي
د سينې دننه ومري ژوندی زړه
او نظر ته يې بيا نيغ ښکاري کاږه
د دنيا له حرب و ضربه کناره شي
خپل ژوندون ورته آرام کښې ور ښکاره شي
له دريانه يې را خيزي نه څپې
مرغلرې يې تېکري بې معنې
نو اول په کار ده فکر کښې پاکي
بيا آسانه شي د فکر آبادي

# د کليمυ حکمت

نبوت چي د خدایΨ حکم کړي روان
لته ورکړي سلطنت ته د سلطان
د باچا محل يې خيال کښې بتخانه وي
د بل حکم يې غيرت ته تازيانه وي
په خدمت کښې يې شي پوخ هر يو کچه
يو تازه غوغا ترې واخلي زمانه
درس يې دا وي چي خدایΨ بس دی نور هوس
چي بنديان نه شي په بند د ها يو کس
له نمئ يې د انګور څانګو کښې اور شي
او له ساه يې موتي خاوره کښې روح خور شي
دی معنا وي د جبريلυ او د قرآن
دی د فطرة الله اوسي نګهبان
د فنکار له عقله ښه د ده حکمت
له ضميره يې را وځي يو ملت
حکمران دی بې پرواه له تخت و تاجه
بې سپاهي او بې چوغې او بې خراجه
په نظر يې سپرلی جوړ شي له يخنيو

او د خم خير يې يې زيات تريخ وي له ميو
د سحر په اسويلو کښې يې حيات وي
په سحر يې تازه شوی کائنات وي
بحر و بر يې په طواف خراب، تراب
په نظر کښې يې پيغام د انقلاب
د "لا خوف عليهم"* درس ورکوي
په سينه کښې د آدم زړه ځايوي
ورښيي تسليم د عزم او د رضا
ورکوي لکه ډيوه ورته رڼا
خبر نه يمه چې څه جادو کوي
خو د تن دننه روح بدَلَوي
په صحبت يې مرغلرې شي تيکرې
په حکمت باندې يې ډک شي هر خالي
درمانده بنده ته وايي چې پاڅه
دا زاړه معبودان کړه ذره ـ ذره
بنده ورک کړه جادو د دې دنيا
په دې دوو ټکو د ربي الاعلٰى

---

* تلميح ده د قرآن پاك د آيت: لا خوف عليهم ولا هم يحزنون.
ژباړه: نه يې څه ويره شته او نه غم کوي.

فقر غواړې له خالي لاسه مه ژاړه
عافیت په حال کښې نه په مال کښې غواړه
اخلاص، صدق او صفا او سوی او درد
نه سره سپین او کېمخابونه شنه او زرد
ځوانه! تېر شه له "کاوس" او له "کې" څه
خپل طواف کوه، د بل د کوڅې نه
له خپل ځایه لرې پروت يې افتاده
تپوس کېږه مه چې يې شاهین زاده
یو غریب مرغی چې راشي د باغ خوا له
چرته جوړه کړي د خپلې خوښې ځاله
ته چې فکر دي اوچت دی له آسمانه
دا غریب مرغی زیات مه کڼه له ځانه
بیا دا نهه آسمانونه کړه بِنا
او په خپله مرضۍ جوړه کړه دنیا
په رضا کښې چې فنا شي د مولا
دا مومن بنده قضا شي د مولا
دا څلور واړه طرفه شنه فضا
د هغه له پاك ضمیره شي پیدا
پخوانو غوندي رضا کښې شه فنا

خپل ګوهر کړه له صدفه را جدا
په تيارو کښې د دې کاڼو د جهان
د فطرت په نور رڼا کړه خپل چشمان
چې د حق جلال دې نه شو په نصيب
نو د حق جمال دې نه شو په نصيب
ابتدا د مستۍ مينې قاهري ده
انتها د مستۍ مينې دلبري ده
مومن دی له کمالاتو د وجود
دی وجود دی او باقي هرشې نمود
که را خپل کړې سوز و تاب د لا اٰله
په مراد به د ده ګرځي مهر و ماه

# د فرعون حکمت

د اربابِ دين حکمت مې کړو بيان
د اربابِ کين حکمت کړم در عيان
د اربابِ کين حکمت دی مکر و فن
مکر و فن؟ تخريب د روح تعمير د تن
يو حکمت د دين له قيده بې پروا
او د شوق له ځايه پروت لرې بل خوا

په تدبیر یې د مکتب دا وي نظام
په خواهش د مالك سوچ کوي غلام
د قام شیخ چي ښایسته مجلس لري
په مراد دده خپل دین نوی کوي
په منتر دده یو قام شو په منځ نیم
سم به نه شي بې کوتکه د کلیم
های! دا قام چي د پردو په تدبیر مري
خپله ځاله ورانوي بل جوړوي
په علمونو کښې به شي صاحب نظره
او له ځانه له وجوده بې خبره
د غمي نه یې د حق نقشې کړې وراني
زړه کښې و ټوکېدې مړې شوې آرزوګانې
بې نصیبه دی اولاد د غیرتي
روح د تن مړې په قبر کښې ساتي
د حیا نه بې خبره بوډاګان
جینکو غوندي ځلمي مشغول په ځان
آرزوګاني یې په زړه کښې نه ټینګیږي
ژوندون نه ویني خو مړي را پیدا کیږي
جینکۍ یې خپلو زلفو کښې ښتونکې

شوخ نظره، ځان ښیونکي، عیب ویونکي
جوړې- جوړې غوړې- غوړې زړه ورکړي
دواړه ورزي لکه توري بهر کړي
سپینې لېڅې یې مزې دي د کتو
د مهي سینه په مینځ کښې د ځپو
یو ملت دی خاکستر یې بې شرر
له ماښامه یې لا زیات تور دی سحر
په تلاش د ساز سامان دی سر تر سره
کار یې څه دی؟ د ژوند فکر د مرګ ویره
مالداران یې دي شومان او عیش پرست
مغز نه ویني په تش پوستکي مست
د حاکم طاقت ته پروت وي په سجده
زیان د دین او د ایمان ګڼي فایده
ځان یې نه کړلو له ننه را جلا
خیال تې نه رائې نقشونه د صبا
په ترخونو کښې دفتري د نیکونو
او بې برخي دي د دوی له عملونو
دین یې غیر سره وفا عهد محکم
جوړوي دیر چې په خښتو د حرم

آه دا قام چي شو له حقه لاس پر سر
مړ شو بيا هم په خپل مرګ نه شو خبر

%%%

# لا الٰه الا الله

يو نكته ده وايي دا مردانِ حال
لا جلال دى د امت الا جمال
لا او الا كاينات را ټينګوي
لا او الا دروازې ببرته كوي
دا تقدير دى د جهانِ كاف ونون
لا حركت پيدا كوي الا سكون
چي څو پوه نه يې په راز د لا الٰه
شلوى نه شې زولنې د غير الله
په دنيا كښې دى هر كار شرو په لا
دى اول منزل د خداى د بنده دا
كوم ملت چي په دې سوز وترپېدو
ځان يې بيا له خپلې ختې پيدا كړو
دى ژوندون د غير الله ته ويل لا

ده په دغه هنګامه تازه دنیا
هر ګرېوان نه دی په دې لېونتوب چاك
ښايي نه داسي لمبې ته هر خاشاك
دغه یوه جذبه په زړه کښې د یو ځوان
سل د لاري ناست په لاره کړي روان
ته غلام غواړې په جن-ګ د خپل آقا
موټي خاوري ته يې کړه ګډ تخم د لا
چي دا سوز د چا ور ګډ شي په حیات
د قیامت له هوله، هول وي د ده زیات
لا، مقام دی د ضربونو پې به پې
دا د تندر شور دی ساز نه دی د نی
هر یو شته يې په ګزار شي نیست نابود
چي بهر شي له ګردابه د وجود
درته وایم د عربو زوړ روزګار
چي خبر شې د کچه او پوخ په کار
ریز مریز يې په ګزار لات و منات
په جهاتو کښې آزاد شو له جهات
چاك در چاك زړه قبا د دوی له لاسه
مړ قیصر شو مړ کسرٰی د دوی له لاسه

کله غر يې له بارانه په ژړا
کله سيند يې له طوفانه په ژړا
جهانونه يې په اور کښې لکه خس
دغه ټوله هنګامه ده د "لا" بس
دى زوړ دير کښې مسلسل و ترپيدو
يو تازه جهان يې بل وټوکوو
د حق بانګ ګور د ده سحر خيزي ده
څه چې وينې دا د ده تخم ريزي ده
دا چې بلې د لاله وينې ډيوې
ټوکيدلې يې دي پر غاړه د چينې
د غير نقش يې ووينځلو له سينې
موټې خاوري يې پيدا کړې هنګامې
دا چې وينې په دې دور کښې د فيرنګ
غلامي او آقايي سره په جن-ګ
د روس زړه شو وينې۔ وينې او ځيګر
د ضمير نه يې يو "لا" شو را بهر
زوړ نظام يې لاندي باندي وويشتلو
په نشتر يې د دنيا رګ ووهلو
ما يې کړي مقاماتو ته نګاه

"لا سلطان"، "لا" کلیسا او "لا الٰه"
پاتې فکر يې سیلو کښې شو د "لا"
اس✡ يې لا نه ړو تر ځایه د "الا"
دا کېدای شي چي په زور کښې د جنون
ځان یو ورځ له دې سیلیو کړي بېرون
آرام نه کوي د "لا" ځای کښې حیات
د "الا" خوا ته روان وي کاینات
"لا" او "الا" ساز و برګ دی د امت
بې اثباته نفي مرګ دی د امت
محبت کښې پخېدای نه شي خلیلυ
چي څو "لا" يې د "الا" نه شي دلیل❖
د حجرې په مجلسونو مبتلا
یو نمرود ته چیغه ووهه د "لا"
ته د "لا الٰه" په زور نا خبر مه شې
نه ارزیږي دا چي وي په دوه اوربشې
چي د چا په لاس کښې توره وي د "لا"
هغه دی په هر وجود فرمان روا

---

✡ سورلی
❖ راه نما

# فقر

اې د خپو بندګانو! فقر څه دی؟
یو دانا بینا نظر، یو ژوندی زړه دی
فقر خپل روزګار پخپله سنجول دي
او د "لاالٰه"نه تاؤ را تاؤ کېدل دي
فقر څه؟ خیبر ګټل په اوربشینه
فقر تل د باچهانو ښکار کوینه
فقر ذوق او شوق تسلیم او هم رضا
فقر دلته امانت د مصطفٰیρ
فقیري په فرشتو شبخون وهي
په بنیاد د زمانو شبخون وهي
تا په بل اوچت مقام ورغورزوي
الماسونه د ښیښو نه سازوي
له قرآنه ساز و برګ د ده سازیږي
یو فقیر سړی په کند کښې نه ځاییږي
په مجلس کښې کم امیزه کم سخن
خو د ده په ساه وي ګرم انجمن
بې وزرو ته ذوق ورکړي د پرواز

نري ماشي ته زور ورکړي د شهباز
چي سلطان سره په جن-ګ ورشي فقیر
د شر له زوره ورپي سریر
لېونتوب یې غوغا ګډه کړي په ښهر
مخلوقات خلاص کړي له ظلمه او له قهر
بې له هغې صحرا دی نه دیره کیږي
چي شاهین یې له کونتر څنې ویرېږي
زړه یې زور لري په جذب و په سلوك
هر باچا ته وهي چیغه لا ملوك
زموږ خاوره کړله اور هغه لمبې
چي له خسه یې په ویره ځي شغلې
هغه قام به نه شي جن-ګ کښې چاته لر
چي پکښې اوسي یو مردِ قلندر
ټول عزت زموږ د ده په استغنٰی دی
سوز زموږه د ده شوقِ بې پروا دی
ته د ده په آئینه کښې ځان ته ګوره
چي خبر یې د ځرګند دلیل له زوره
دی قوت د دین د فقر بې نیازي
او حکمت د فقر دی دلنوازي

هر مومن ته وايي دا سلطان (صلعم) د دين
"چي مسجد زموږ دا ټول روئې زمين"*
الامان له ګردشونو د آسمان
چي زموږ په مسجد نور شي قابضان
سخت كوشش كړي هر بنده په زړه صفا
چي تر لاسه كړي مسجد د خپل مولا
وايي ته پرېږده دنيا؟ مه وايه دا
پرېښول دا دي چي قبضه كړه دا دنيا
په دنيا ور سورېدل د دې پرېښول دي
او له دې مقامه مخكښې تېرېدل دي
دا د خاورو ختو ملك د مومن ښكار دی
باز خپل ښكار پرې اېښی؟ دا څنګه روزګار دی؟
په حل پوه نه شوم د دې نكتې مشكلې
چي شاهين له آسمانونو ښتي ولې؟
حيف هغه شاهين چي نه كړي شاهيني
يو مرغۍ د ده په لاس نه شوه زخمي
پروت په څاله كښې حيران و پرېشان

---

* تلميح د حضورρ د يو مشهور حديث چي پكښې ارشاد دی چي تمامي مځكه زما جماعت يعني مسجد دی.

وېږي نه لیدو الوت د شین آسمان
د قرآن فقر حساب د ؤ او شته
نه سرود، رقص، رباب، مستي، نشه
د مومن فقر تسخیر د شش جهات
چي بنده کړي په اثر مولا صفات
د کافر فقر خلوت د دشت و در
د مومن فقر لرزا د بحر و بر
د هغه ژوندون سکون په غر په غار
او د ده ژوندون یو مرګ دی باوقار
هغه خدای غوښتل او خپل بدن پرېښول
دا خودي د خدای په کاڼي تېرول
هغه څه؟ خودي وژل او سوزول
دا خودي لکه ډیوه رڼا کول
چي څرګنده فقیري شي پر جهان
له هیبته یې لمر، سپوږمۍ شي په لرزان
میدان ګرم کړي د بدر و د حنین
را اوچت کړي تکبیرونه د حسینτ
فقیري چي اوس ځان نه څرګندوي
بې جلاله پاتې شوه مسلماني

های! دا موږه او های! دا زړه دنیا
د "لا" توره له ستا لاس کښې نه زما
بېرته زړه له غیرالله کړه اې ځلمیه!
ورکه دا زړه دنیا کړه اې ځلمیه!
چې د دین غیرت دې نه وي دا څه ژوند دی؟
مسلمانه مرګ له دې ژونده ښه ژوند دی
مردِ حق دوباره وزېږوي ځان
او د حق په نور رڼا کړي خپل جهان
ځان کره کړي په عیار د مصطفٰیρ
چې پیدا کړي یو تازه غوندي دنیا
آه! دا قام به پرېوتو په تقدیر نه
چې شاهان يې کړو پیدا او فقیر نه
د دې قام افسانه مه پوښته له ما
څه به ووایم چې نه ده د وینا
غوټه۔ غوټه مي مرئ ده غریو نیولي
قیامتونه د سینې دننه ښهٔ دي
د دې ملك مسلم له ځانه نادیده
و يې نه لید په مودو د خدای بنده
په قوت د دین کوي بدګماني

کاروانونه خپل په لاره کښې وهي
له درې قرنه دا امت زبون او خوار
ژوند بې له سوزه، او بې لطفه يې روزګار
ذوق يې ړوند، فطرت کچه، خيال نارسا
نه يې شوق لري مکتب نه يې مُلا
بد فکرۍ کړو په دنيا کښې خوار و زار
دښمنيو له خپل ځانه کړو وېزار
له مقام او له منزله بې خبره
ترې نه خوند د انقلاب هېر شو له سره
طبعيت يې صحبت ناخلي د هوښيار
نامنونکی، افسرده، بې خونده خوار
يو غلام دی چې شړلی خپل مولا
خوار، غريب، مفلس، زبون او بې پروا
نه په لاس کښې يې طاقت چې سلطان لر کړي
نه په زړه کښې يې رڼا چې شيطان لر کړي
پير يې دی د فيرنګي د لاټ* مريد
او په خوله ښيي مقام د بايزيد
وايي دی د دين رونق دی محکومي

* لاټ يعني لارډ

د ژوندون او د خودۍ نه محرومي
د اغيارو حکومت رحمت ګڼي
چورلي مست د کليسا نه او بيا مري
اې له ذوق و شوق و درده سوي خالي
زمانې په موږ څه وکړو؟ څه کوي؟
زمانې موږه له ځانه کړو پردي
د جمالِ مصطفیٰρ نه کړو پردي
چې د ده مينه مو لاړه له سينې
له اينې لاړو جوهر د آئينې
د دې عصر زړه دي ونه پېژندو
په اول داد کښې دي ځان پرې بيالودو
چې دماغ دي کشمکش کښې پرېوتو
په زړګي دي پيدا نه شوه يو آرزو
ځان را ټينګ کړه ناخبره له خپل ځانه
يو لحظه شه بې خبره له هرچا نه
دا تر کومي غم وسواس خوف و خطر
لږ دي ځان له خپل مقامه کړه خبر
ډېري لوړې ځانګې شته په دې بوستان
په پرېوتو ځانګو مه تړه آشيان

خوږ آواز لرې خوږوې نغمې لرې
په کارغانو کښې ځان ښنګه ګڼوې
اول ځان لکه د تورې کړه تېره
بیا یې ورکړه د تقدیر په لاس کښې ته
ستا په زړه کښې دي سیندونه سېلابونه
چې خسښي ورته ښکاري درانه غرونه
د سېلاب ژوندون په دې کښې دی چې ځي
نه یوه لحظه آرام کوي نه مري
نه ملا یم، نه فقیه نکته ور
نه د فقر دروېشي نه یم خبر
د دین لار کښې تېز نظره او سست ګام
پوخ زما کچه او کار مي ناتمام
چې غمونه د زړګي یې را بخښلي
سلو غوټو کښې یې یو ده پرانستلي
"له دې سوزه خپله پرخه کړه جدا
بیا به رانه شي فقیر لکه زما"

%%%

# مردِ حُر

مردِ حر په "لا تخف✡" دی زوره ور
موږ سرټيټي يو ميدان کښې دی زره ور
مردِ حر په لا اِلٰه روشن ضمير
نه غلام وي د باچا نه د امير
مردِ حر له د اوښ بارونه وړي
مردِ حر بارونه وړي او ازغي خوري
مردِ حر داسي مضبوطه پښه کښيږدي
چي د لاري نيض له سوزه ټوپ وهي
روح د ده په مرګي لا را ژوندی کيږي
او تکبير يي بې اوازه پورته خيزي
چي ښيښې ګټي د لارې پراته سنګ
دا فقير اخلي شاهانو نه قلنګ
ګرموي دي طبعيت د ده پياله
لويه کړي د ده سيند ده ستا وله
باچهان پټ د حريرو په قبا
وي د دې برښد فقير نه په رپا

✡ل اتخف، تلميح دی د قرآني آيت، ژباړه: ويره مه کوه.

د دین راز موږ ته خبر ده ته نظر
دی د کور دننه موږ ترې نه بهر
موږ دوستان د کلیسا، مسجد فروش
دی له لاسه د حضرتρ پیمانه نوش
نه پیالې په لاس او نه د مخ غلام
دی په می د الست مست او موږ تش جام
د ګل مخ سور دی د ده د نم له زوره
تور لوګی یې زیات روښان زموږ له اوره
په سینه کښې یې تکبیر د امتونو
په تندي کښې یې تقدیر د امتونو
زموږ مخ کله ګرځې ته کله دیر ته
دی روزی له هم متازه نه وي غیر ته
موږ بندیان د فیرنګي دی عبدهٔ
نه ځاییږي په جهان د رن-ګ و بو
موږ سهار ماښام په غم د ساز سامان
او آخر کښې څه؟ تریخ مرګ مو وي پایان
ده ته مرګ له مقاماتو د جهات
بې ثباته دنیاګۍ کښې یې ثبات
خاوندان د زړه زموږ صحبت کښې مړه

او د ده صحبت کښې ختې مومي زره
په ګمان او ظن تړلی زموږ کار
او د ده خبرې کمې تول کردار
موږ نهر کلي پر کلي کړو ګدا
د ده فقر لري تیغ د "لا اله"
موږ بنې سپکې، سیلۍ مو وړي را وړي
دی په درز له غره چینې را بیوي
د ده خپل شه او پردی شه له جهان
کور دي وران کړه، او د کور مالك کړه ځان
ګیلې مه کړه د آسمان له چور لندي
ځان ژوندی کړه په صحبت د دې ژوندي
د کتاب علم صحبت ته نه رسیږي
په صحبت کښې د سړو، سړی جوړیږي
مردِ حر دی غرق دریاب څپې۔ څپې
اوبه اخله له دریاب پرېږده ناوې
جوش وهي د ده سینه لکه د دېګ
لوی۔ لوی غرونه د ده مخکښې موتی رېګ
وي په امن کښې رونق د انجمن
لکه باد چي د صبا وي پر چمن

او په جن-ګ کښې هغه پوهه په تقدير
ځان ته خپله کني قبر په شمشير
له تا زار شم، له موږ ته‌ښته ده ته ځه
په لمن پوري يې ځان ونښلوه
په دې خاوره کښې زړه نه کيږي يارانو!
بې نظره د زړګي د خاوندانو
"د يو خس قيمت دي نشته پر دنيا
که لمن دي ټينګه نه کړله د چا"

## د شريعت رازونه

ما د روم له پيره زده کړې څو نکتې
ځان مي اوسوځوو خپله په هغې
که د دين د پاره مال پورته کوې
نعمَ* مال صالح به رسولρ وې
((رومي))

که په دې حکمت دي تا نه وي نظر
ته غلام يې او مالك دي سيم و زر

* نِعْمَ مال صالح: د حديث ټکړه ده، مطلب دا چي که مال په دين لګي نو ښه دی

له تش لاسو فراخي مومي ملت
او له داسي اميرانو مصيبت
نوی کار هر يو د ده په نظر خوار وي
او د هر زوړ او بېکاره خريدار وي
ناروا ده ته روا، روا خراب
وېرېدونکی له غوغا د انقلاب
د مزدور په ډوډۍ موړ کارخانه دار
د مزدور د لور عزت کړي تار په تار
په حضور يې غلام ژاړي لکه نی
فريادونه يې په شونډو يې به پې
صراحي کښې څه لري نه په پيالو کښې
محلونه جوړ کړي ګرځي په کوڅو کښې
امير هغه چي فقير غوندي اوسيږي
او په دې زمانه هم د خدای ويريږي
چي زده نه کړي کوم سړی اکلِ حلال
د هغه ژوند شي په قام باندي وبال
اٰه! يورپ په دې نکته نه دی آګاه
هم پوه نه دی په "ينظر بنورالله"*

* ينظر بنورالله: حديث ته اشاره ده، چي مومن د خدای په رڼا ليدل کوي.

دی پوه نه دی په حلال او په حرام
فلسفه يې ده کچه کار ناتمام
یو امت په بل امت باندي څريږي
دی دا نه کړي حاصل د هغه کيږي
د غريبو نه مړی تروړل حکمت دی
او د دوی له تنه روح وکښل حکمت دی
د دې نوي تهذيب کار بنديان څيرل دي
دا څيرل سوداګرۍ کښې پټول دي
دا بېنکونه د يهودو چالاکي
د انسان له سينې نور د مولا وړي
چي څو دړې وړې نه شي دا نظام
د تهذيب د عقل و دين فکر دی خام
بنيادم په دې جهان د خير و شر
خپله نفع پېژنداى شي نه ضرر
څوك خبر نه دی د ښه او بد له غمه
کومه لاره ورانه ده او کومه سمه
د ژوندون له تله شرع شي را پورته
رڼا راوړي د دنيا د تيارو کور ته
که د دې حرام ټول ومني حرام

ترقیامته به مضبوط وي دا نظام
فقیهان دا هسي نه کوي له ځانه
ورته وګوره په بل شان د بل خوا نه
حکم يې عدل دی تسلیم دی او رضا
جرړې يې ښخې په ضمیر د مصطفیٰ ﷺ
له فراقه وي د زړونو تمنا
ته به نه يې که هغه شو رونما
که له درده دي تر شونډو راشي سا
وصل مه غواړه رضا غواړه رضا
مصطفیٰ ﷺ د دې رضا نه کړو خبر
نور څه نشته دغه دین دی مختصر
د جم تخت لاندي پټ کړی دی بوریا
شاهي، فقر مقامات دي د رضا
ژاړه مه او د سلطان حکم منه
د میدان په ورځ بحثونه کوه مه
د هغه له حکمه مه اوړه څه چي وي
چي هیڅ ستا له حکمه مخ نه اړوي
د الله په شرع "احسن التقویم"* شه

---

* تلمیح دی د قرآن پاك د آیت: چي د انسان د وجود ساخت په ډېره ښه طریقه شوی دی

او وارث پرې د ایمان د ابراهیمυ شه
څه وي نور د طریقت په لاره تلل
د ژوندون تل کښې د دین شرع لیدل
که صفا غوارې لیدل د دین رازونه
په غور وګوره د خپل ضمیر تلونه
که ته نه وینې ستا دین ده مجبوري
داسي دین به دي له خدای لرې لري
څو چي حق، بنده او نه ویني آشکار
را وتې نه شې له جبر و اختیار
څو غوټې په خپل فطرت کښې ووهه
د حق ځوان شه دا ګومان او شك پرېږده
چي خبر شې چي ښه څه ؤ بد څه ؤ؟
څه پټ کړي وو د راز نهو پردو؟
چي له رازه د نبيρ واخلي نصیب
جبریلυ ته هم هغه شي ور قریب
اې چي ته په لوی قرآن باندي نازیږې
په حجره کښې به تر کومې پټ اوسیږې
په دنیا کښې له دین پورته کړه پردې
او نکتې د دین کړه هر ځای کښې خورې

چې هیڅوک نه شي محتاج چرې د چا
دا نکته د شریعت ده او بس دا
څه مکتب او ملا جوړې کړې قیصې
بې خبره مومنان له دې نکتې
ژوندی قام یې په تاویل د قرآن مړ کړو
او بل اور یې په سینه کښې د ځان مړ کړو
صوفیان با صفا مي ولیدل
د مکتب شیخ او ملا مي ولیدل
یو نبي هم شو پیدا له دې زمانه
چې قرآن کښې بل څه نه ویني بې ځانه
هر یو کس پوه په قرآن او په خبر
او په شرع کښې کم علمه کم نظر
عقل و نقل غلامان یې د هوس
او منبر یې د روټۍ منبر دی بس
څه به وي دا کلیمان څه یې رڼا
تش لستوڼي لري بې ید بیضا
د قامونو کار نیمګړی نا رسا دی
په عمل به وښيې چې حق دي تا دی

# د هنديانو په بې اتفاقۍ يو څو اوښکې

اې اټکه! همالې! او اې ګنګا!
دا ژوندون تر څو بې خونده بې رڼا
بوډاګان له فراسته بې نصيبه
او ځوانان له محبته بې نصيبه
شرق او غرب آزاد او موږه ګرفتار
زموږ خښتې او د بل د کور دېوار
ژوندون خپله تېروَل په مراد د بل
خوب هم نه دی دا خو مرګ دی تل تر تل
له آسمانه دا بلا نه را کوزيږي
دا مرګی د زړه له تله را ټوکيږي
د دې ښکار نه قبر غواړي، نه ملا
نه دوستان نه فاتحه او نه دعا
نه د ده په غم څوك څيري کړي ګرېوان
نه دوزخ غواړي په بل خوا له آسمان
حشر نشر نه غوبل او نه غوغا
د ده تن کښې خپله پروت د ده صبا
څوك چې دلته څه کړي دلتې رېبي

دا بنده به خدایΨ ته څه دپاره ځي؟
چې د کوم امت وي زړه بې تمنا
هغه نقش، فطرت اوچت کړي له دنیا
دا جادو دی اعتبار د تاج و تخت
دې جادو جوړ کړو ښیښنو نه کاڼی سخت
په مرضۍ باندې د ده سحرِ مبین
کافر پرېښوه کافري او مومن دین
هندیان واړه ور اخته شو یو په بل
په زړو فتنو کښې بیا ور پرېوتل
فیرنګي اوس د مغرب د سر زمین
فیصلې کوي په مینځ د کفر و دین
څوك پوه نه شو چې اوبه دي که سراب؟
انقلاب! اې انقلاب! اې انقلاب!
چې د خاورو ختو فکر کوې ته
د اللهΨ نه طلب کړه د ژوندي زړه
زړه په دغو خاورو ختو کښې اوسیږي
خو دا نهه واړه آسمانه ترې څرخیږي
چرته خاوره خته ځان ونه ګڼې
چې دی، دی ان د افلاك له بلندۍ

دا جهان ده ته دیار خوږه کوڅه
د یار بوی ګوري قبا کښې د لاله
هر ساعت يې له روزګاره سر تېزی وي
په ګزار يې رېز مرېز د لار تبې وي
د منبر او د سولۍ سره آشنا دی
او خپل اور يې بل ساتلی په رښتیا دی
یو وله ده پکښې پټ دی سمندر
هر یو موج يې د طوفان راوړي خبر
بې روڼۍ شي واړه عمر اوسېدای
لحظه نه شي بې حضوره پایېدای
د وجود د شبستان بله ډیوه
هم مجلس دی پرې روښانه هم کوټه
داسي زړه په مولا مست په ځان خبر
بې له فقره به په لاسو نه شي ور
اې ځلمو! لمن يې ټینګه ونیسئ
که پیدا يې غلامۍ کښې آزاد مرئ

%%%

# موجوده سیاست

کلکوي په کلکو غوټو غلامي
کم نظره ورته وايي آزادي
د جمهورو هنګامه يې وليده
باچهي له يې مخ پټ کړو په پړده
سلطنت ته وايي جامع الاقوام
په کار پوخ راته ښکارېږي په خوله خام
په فضا کښې يې خورېږي نه وزر
په کونجۍ يې پرانستای نه شي يو در
د پنجرې مارغه ته وايي د زړه سره!
د ښکاري کور کښې کړه ځاله برابره
چې په غر په صحرا ځاله جوړوي
ځان پخپله باز باښې ته غورزوي
له جادو يې مرغۍ مست شي په دانه
په مرۍ کښې مړه کړه خپله ترانه
آزادي غواړې؟ له داسي دامه تښته
تږی مړ شه خو د ده له جامه تښته
امان غواړه له ګرمۍ يې د ګفتار
الحذر يې له کلامِ پهلو دار*

* **پهلودار: داسي خبره چې ګښې معنٰی لري**

ستړګې کړي د ده رانجه زیاتې بې نوره
او مجبور بنده له دې شي لا مجبوره
د شرابو له پیالې يې الحذر
هم له بدو، جوارو يې الحذر
مردِ حر نه وي له ځانه بې پروا
ځان ساته چرته افیم ونه خورې دا
کړه فرعون ته د کلیمυ غوندي وینا
چي په يو ګزار دي پرق وچوي دریا
زړه مي چوي په بدنامۍ د دې کاروان
چي له نور يې نادیده دي امیران
تن پرست او په جاه مست او کم نګاه
زړه کښې نه لري رڼا د لا اله
د حرم ځوی او مرید د کلیسا
تار په تار يې کړه زمونږ پرده حیا
د ده لاس لمن نیول بیوقوفي ده
چي سینه يې له روښانه زړه خالي ده
په دې لار تکیه په ځان کړه چي سړي
په رندو سپو ښکار کوای نه شي اوسي
آه! دا قام چي ستړګې يې پټې کړې له ځانه

غیرالله ته يې زړه ورکړو په آسانه
چې خودي شي د ملت سينه کښې مړه
غر نوري خو باد يې وړي لکه بڼه
پروت په ختّه کښې يې شته دی لا اِله
خو تر تن تريې يو مسلم نه شه پيدا
هغه کس چې بې يقين کړي په يقين
له سجدې يې آسمان رپي او زمين
د تيغ لاندې يې له خولې ځي لا اِله
او له وينې يې ټوکيږي لا اِله
هغه سوز شته نه مستي نه مشتاقي
په حرم کښې ژوندی زړه نه دی باقي
مسلمانه! ته په دې دیرِ کهن
څو به پروت اوسې قيدي د اهرمن
په توفيق کوشش او خوند د جستجو
موندای نه شي بې د شپې له اسويلو
تر څو ژوند لکه د خس په سمندر
ځان را ټينګ کړه او کلک کاڼی شه د غر
خبروي نه څوك د زړه په حال دانا
خو خپل غم ساتلی نه شمه له تا

غلامۍ کښې پیدا شوی یم غلام
لرې پروت یم له مسجدِ حرام
چې په نوم د مصطفٰیρ وایم درود
ویلې- ویلي مي له شرم شي وجود
عشق مي وایي "اې چې بل ځای د تا ستانه ده
او سینه دي د بتانو بت خانه ده
رن-ګ او بوی د محمدρ چې نه لرې
په درود بې نامه څه خرابوې"
له قیامِ بې حضور مي څه پوښتې
له سجودِ بې سرور مي څه پوښتې
د حق پرق که یو لحظه وي یو نفس
په قسمت کښې د آزادو دی او بس
یو آزاد بنده چې پرېوځي په سجود
په طواف یې څرخ وهي چرخِ کبود
غلامان یې له جلاله ناخبره
له جمال یې له زواله ناخبره
له غلامه غواړه مه خوند د ایمان
که هزار ځله حافظ وي د قرآن
مسلمان دی او پیشه یې آذري

د ده دین او د ده پوهه کافري
که لري د ژوندون سوز په تن او ځان
په لمانځه کښې دی معراج د مسلمان
او که ګرمه وینه نه لري پر تن
سجده څه وي؟ زور دستور دی د بدن
د آزاد اختر کښې شان د ملك او دین وي
د غلام اختر بس جمع مومنین وي

%%%

# يو څو ټکي امت عربيه ته

تر آبده دي باقي وي ستا صحرا
د چا چيغه ده لا قيصر و کسرٰی*
د دې لرې او نزدې په دا جهان
چا د ټولو نه اول لوستو قرآن
اول چا زده کړلو راز د الاالله
کوم ځای بله شوه اول دغه ډيوه
حکمت علم ؤ د چا پر دسترخان
په آيت د "فاصبحتم✡" کښې د چا شان
له سيرابې سا د دې امي لقب
سره لاله شولو ميرې۔ ميرې عرب
حريت ساتلی ده غېږه کښې تن دی
په رښتيا د ده پرون د خلګو نن دی
زړه يې کښېښود په بدن کښې د انسان
بې نقابه يې آدم کړلو روښان
هر زوړ خدای يې کړلو لاندي تر قدم

* لا قيصر ولا کسرٰی: تلميح دې حديث ته: کسرٰی ولا قيصر بعده
✡ فاصبحتم: تلميح دې آيت ته: فاصبحتم بنعمته اخوانا

هر یو شاخ وکړې غوټۍ د ده په نم
ګرمي۔ ګرمي هنګامې بدر و حنین
دا صدیق، فاروق، حیدر او دا حسینψ
دا اوچت۔ اوچت او دروند اذان په جن-ګ کښې
دا قرآت د والصّٰفّٰت* روان په جن-ګ کښې
ایوبي✡ توره نظر د بایزید☼
د دوو کونو خزانو ته یو کلید
زړه او عقل دواړه مست له یوه مې
اختلاط د ذکر و فکر روم و رې❖
شرع، دین، عقل و حکمت، انتظامونه
په سینو کښې بېقراره ژوندي زړونه
عالم سوز ښایست د الحمراء او تاج
چې اخلي قدوسیانو نه خراج
دغه ټول د ده د وخت یوه لحظه ده
یو جلوه تجلیاتو نه د ده ده
په ظاهره یې دا رن-ګ په رن-ګ جلوې دي
له عارفه یې لا پټې خزانې دي

* الصّٰفّٰت: د قرآن کریم سورة دی
✡ ایوبي: سلطان صلاح الدین ایوبي
☼ بایزید: حضرت بایزید بسطامي[رح] یو لوی ولي دی
❖ رروم و ری: حضرت جلال الدین رومي[رح] او امام فخرالدین رازي[رح]

ډېر ثنا صفت د دې رسولِ پاکρ
چې رڼا يې په ايمان کړو موږ خاک
حق ته زيات تېز او تېره کړی له شمشير
د اوښانو سپور يې سپور کړو په تقدير
د تکبير نارې او لمونځ او حرب و ضرب
دې غوغا کښې خوش بختي د شرق او غرب
واه۔ واه هغه مجذوبي دل بردګي
آه! دا فکر دلګيري افسردګي
ټولو خلکو خپل عزت کړلو سيوا
ته پوه نه شوې په قيمت ستا د صحرا
يو امت وې درنه جوړ شو امتونه
خپل مجلس دې تار په تار کړو بدشګونه
د خودۍ نه چې جدا شو هغه مړ شو
چې ملګری د بل چا شو هغه مړ شو
تا چې وکړو په ځان نه دي کړي چا
په تکليف دی در نه روح د مصطفیٰρ
بې خبره له جادو د فيرنګي
په لستوڼي کښې فتنې پټې ساتي
له فريبه که د ده غوارې امان

له خپل حوضه يې شړه لرې اوښان
په حکمت يې هر يو قام کړو بې اسرې
د عربو وروروليٰ شوه سل پرې
چې عرب د ده په جال کښې شو قيديان
يو لحظه امان ور نه کړلو آسمان
په خپل عصر باندي وکړه يو نظر
را پيدا کړه ځان کښې بيا روح د عمرؓ
جمعيت مضبوطوي دينِ مبين
دين خو عزم دی اخلاص دی او يقين
څو زړګی د ده رازدان وي د فطرت
د صحرا زلمی پاسبان وي د فطرت
ساده زړه يې په هر ښه او بد پوهيږي
په طلوع يې زر سل ستوري وي ډوبيږي
پريږده سمه، صحرا، غر، د غره لمنه
خپل وجود کښې خيمه ووهه دننه
طبع تيزه کړه په باد د بيابان
او ناقه دي کړه را وړاندي په ميدان
دا اوس دور دی ستا له ورځو را پيدا
ستا په ميو مست دی ستا په نور رڼا

ته پخپله وې د دې اول معمار
او له تا څرګندېدل د دې اسرار
فیرنګیانو چې په ځوی ونیوو دا
یو شاهد شو بې ناموسه بې حیا
د کتو دی ښایسته دی او شېرین
خو ډېر شوخ او کج خرامه او بې دین
د صحرا زلیمه! پوخ کړه دا کچه
په زر کاڼي دي کره کړه زمانه

## اې د مشرق قامونو! اوس څه وکړو؟

آدمیت ژاړي زار۔ زار له فیرنګي
ټول ژوندون دی ناقرار له فیرنګي
اوس څه وکړو د مشرق قامونو څه؟
رڼا کیږي په مشرق خوره تیاره
په زړګي کښې یې ژوندی شو انقلاب
شپه تېریږي را ختونکی دی آفتاب
یورپ خپله شو په خپل خنجر زخمي
خوروي د آسمان لاندي لادیني
پړانګ پر ځان خور کړی د ګډ پوستین

او ګډانو ته پټ ناست دی په کمین
په مشکل یې اخته کړی دی انسان
او له ده بنیادمتوب دی پرېشان
بنیادم د ده نظر کښې آب و ګل
د ژوندون قافله نه لري منزِل
دا چې څه وینې تمام د حق انوار دي
د څیزونو حکتونه یې اسرار دي
چې د خدای علامې وینې مردِ حر دی
او هم دغه حکمت اصل د "انظر"* دی
مسلمان بنده د دې نه بهرور دی
په بل زره سوځې د ځان په حال خبر دی
چې یې علم خاورې ختې کړې رڼا
لا یې زیاته ویره کیږي له ملا
دغه علم زموږ خاورو ته کیمیا دی
فیرنګیانو کښې د دې اثر جدا دی
چې د ښځ بد معیار نه لري د سره
سترګې یې اوښکې نه لري او زړه یې ویره

* آیت ته اشاره ده: افلا ینظرون الی الابل کیف خلقت،
ژباړه: یعني د فطرت نظام په غور ګورئ

رسوا علم کړي په ښار په بیابان
جبرئیلυ يې په صحبت کښې شي شیطان
د یورپ عقل دی توره پر اوږه
د انسان په هلاکت پسې اخته
دې تیلو سره په ملك د خیر و شر
ښايي نه مستي د علم او د هنر
های! افرنګ او های آئین د فيرنګي
د ده فکر د ده عقل لا دیني
علم و عقل ته يې ښيلې ساحري
ساحري، جادوګري نه کافري
هر طرف ته سل فتنې کوي غوغا
د رهزن له موټي توره کړه جدا
اې! چې روح او بدن بیل- بیل پیږني
د یورپ لاديني کړه ټوټې- ټوټې
د مشرق روح به يې په تن کښې پوك وهي
چې پرې لرې د معنا نه کړي جندرې
د زړګي د لاندي عقل یزداني وي
او د زړه نه چې آزاد شي شیطاني وي
زندګي ده هر ساعتې کشمکش

عبرت واخلئ له حالاتو د حبش
د یورپ مذهب بې جن‌ګ و قېل و قال
په پړانګانو ټول ګډوري کړي حلال
نوی نقش په دنیا کړي را برسېر
د کفن د غلو نه څۀ امید د خېر
بې له دې نه چې نور څه کړي جنیوا؟
چې دا ګډه دي تا ښکار شوه دا زما
په دنیا کښې نه ځایېږي دا نکتې
یو جهان غوبلې یو دنیا فتنې
اې په رن‌ګ مینه ځان پاك کړه له رن‌ګ
شه مومن د ځان کافر شه له فیرنګ
نفع زیان سود او سودا دي ستا په لاس کښې
د مشرق عزت حیا دي ستا په لاس کښې
بیا دا تار په تار قامونه وګنډه
او اوچته د ربښتیاوو کړه جنډه
اهلِ حق زندګې مومي په قوت
او قوت دی اصلیت کښې جمعیت
بې قوته فکر، مکر او افسون
بې له فکره قوت جهل او جنون

سوز و ساز او درد و داغ دي له ايشيا
دا شراب او دا اياغ دی له ايشيا
موږه مينې ته ښيلې دلبري
دلبري چې بنيادم پيدا کوي
دين، هنر دواړه مشرق نه څرګنديږي
آسمانونه دغې خاورې ته زيريږي
موږ څرګند کړو څه چې پټ ؤ له نظره
لمر له موږه دی او موږه يو له لمره
ګوهرونه ورويي زموږ سپړلی
د هر سيند شوکت زموږه طوفان دی
خپل روح وينم په نغمو کښې د بلبل
د آدم وينه په سور مخ کښې د ګل
زموږ فکر چې تلاش کړو د وجود
نوی سور کړو اول تار د هست و بود
په سينه کښې مو دننه ؤ يو داغ
دا مو بل کړلو د لار په سر څراغ
اې د دين او د تهذيب دواړو امينه!
را څرګند يدِ بيضا کړه له آستينه
پاڅه پرانځه د دهر غوټه سخره

او نشه د فیرنګۍ لر کړه له سره
د مشرق د نوي نقش کښېږده بنیاد
او خپل ځان له اهرمنه کړه آزاد
پېژني ښه فیرنګیان او هم يې کار
وي تر څو به غاړه ستا د ده زنار
کړو زخمي د ده نشتر د ده له ستنو
موږ له اوس هم طمع دار یو د ګنډنو
ښه پوهېږې باچهي خو قاهري ده
قاهري زموږ په دور سوداګري ده
د دوکان د تختې مل دی تخت د تاج
یو نه يې ګټه ده او بل نه يې خراج
هغه شاه چي هم باچا هم سوداګر دی
په خوله خیر ستا يي او زړه کښې يې لوی شر دی
که د ده حساب دي ولیدو پوره
له حریره يې ده نرمه ستا پنبه
بې نیازه يې له ځای په مخه ځه
له یخ مړ شه خو پوستین يې اخله مه
بې ګزاره مړ کول د ده آئین
سل مرګونه يې ګردش کښې د مشین

په بوریا باندي يې مه اخله قالین
خپل پیاده يې بدل مه کړه په فرزین
لعل کښې يې رګ دی او ګوهر يې دی داغي
مشك د دې سوداګر دی نافه د سپي
بخملونه يې د سترګو نه خوب وړي
دې رنګونو سره ستا رنګونه ځي
سل سل غوټې دي ورکړي هر یو کار ته
چي د ده جامه وانخلې ستا دستار ته
یو هوشیار د ده له خمه نه څښي مي
څوك چي وڅښي مړ وي پروت په هغه ځای
د سودا پر وخت مسکی خوږې خبرې
ماشومان یو خرڅوي په موږ شکرې
پوه په زړه او په نظر د خریدار
سوداګر دی خدایه دی که سحر کار
ګټه وکړي سوداګر د رن-ګ و بو
خریدار ړانده کانه کړي لکه یو
چي ستا خاورې ټوکولې دي ساده
هغه اغونده، هغه خرڅوه، خوره
پوخ نظرو چي ځانونه پیژندل

ځادرونه به يې خپل خپله اوبدل
اې د نوې زمانې نه بې خبره
د يورپ کاريګرې کړه تر نظره
شتا رېشم نه قالينونه جوړوي
او د تا مخ ته يې بېرته غورزوي
ستا نظر يې په ظاهر باندې خطا شي
په ښايست پسې يې ورک زړګی دې تا شي
صد افسوس په داسې بې موجه دريا
چې د خپل ګوهر غواص نه کړي سودا

%%%

# په حضور کښې د رسالت مآبρ

د دريم اپريل 1963ء د په شپه د په دارلاقبال بهوپال کښې وم، سيد احمدخانؒ مې د په خوب کښې وليد، فرمايل يې چې خپله بيماري د جناب رسالت مآبρ دربار کښې پېش کړه۔

اې زموږ د غريبانو ساز و برګ
دا قام وساته له ويرې نه د مرګ

تا په اوړ وسول زاړه لات و منات
را تازه دي کړو له سره کاينات
د جن انس د ذکر و فکر په وينا
ته اذان يې او ته لمونځ يې د صبا
د زړه سوی خوند سرور دی لا اله
او د فکر شپه کښې نور دی لا اله
نه مو خدای جوړ کړو له غوا او نه د خر
نه مو ټيټ کړو د کاهن په مخکښې سر
نه سجده د معبودانو پخوانو
نه طواف د باچهانو د کوڅو
دا همه ستا عنايت دی بې پايان
زموږ فکر دی لوی کړی ستا احسان
د تا ذکر هغه شوق هغه مستي
چي په فقر کښې ساتي قام غيرتي
ته مقام ته مرحله د هر رهرو
ته د زړه پټه جذبه د هر رهرو
زموږ ساز شو بې آوازه هسي شان
چي مضراب يې په رګونو دروند او ګران
که عجم مي وليدل او که عرب

مصطفٰیρ ګران او ارزان ابولهب
دا بچي د مسلمان روشن دماغ
د ضمیر توره کوټه يې بې څراغ
په ځوانو کښې له رېښمو نرم دي
او آرزو يې په سینه کښې ژر ژر مري
دا غلام ابن غلام ابن غلام
حریت په تصور د ده حرام
مکتب ورکه ترې نه کړه د دین جذبه
له وجوده يې دومره ښکاري چرې وه
دغه مست په فیرنګي له ځانه ورک
د وربشو روټۍ غواړې ترې نه سپک
روټۍ اخلي دا نهر روح ورکوي
په ژړا مو د ده زخم ژړوي
دا نې ګوري، لکه وي د کور چرګان
ناولده له خوره ور شینکي آسمان
د مکتب شیخ کم سواد او کم نظر
دی يې نه کړلو له خپل ځانه خبر
د فیرنګ په اور يې ویلي کړو خپل ځان
او بیا دې دوزخ بدل کړو په بل شان

دا مومن دی او له مرګه نا آګاه
زړه کښې يې نشت لا غالب الا الله*
په سينه کښې يې زړه مړ پروت دی هلاك
بل څه ني ويني خو خوب دی او خوراك
د "نعم" او "لا" نشتر خوري په يونان
په يوه ګېډه د سل زړو احسان
فيرنګې نه بيه کړي د لات، منات
مسلمان دی او غم کړي د سومنات
"قم باذني"☼ ورته وايه دی ژوندی کا
"الله هو" يې په زړه کښې سوی ژوندی کا
موږه تول جادو وژلي يو د غرب
فيرنګيانو مړه کړو يې له حرب و ضرب
ته له دې جام ماتې قامه دوباره
را پيدا کړه په خدای مست ژوندی بنده
چې مسلم پر جهان بيا ويني ځان
او د هر چا نه اعلیٰ ويني ځان
واګې ونيسه شهسواره! يو لحظه

* لا غالب الا الله: بې له خدايه بل څوك غالب نشته
☼ قم باذني: يعني پاڅه زما په حکم

دا خبرې له خولې وزې په دمه
آرزو ووايم كه نه پرانېزم لب؟
شوق مې نه مني خبره د ادب
هغه وايي خوله دې پرانېزه دردمنده
وايي دى غړوه سترګې ژبه بنده
ستا نه چار چاپېره چورلي كاينات
له تا غواړمه نظر د التفات
زما ذكر، فكر، علم، عرفان ته يې
كښتۍ ته يې درياب ته يې طوفان ته يې
يو اوسى يم زوړ زبون زار او ناتوان
چا يو نه وړم تر فتراكه پر جهان
زما ځاى زما حرم دې تا كوڅه
تا ته راغلمه د تا په تلوسه
هغه څه شو په سينه كښې ساز ساتل
په نفس د غوټو غوټي پرانستل
په مرۍ كښې مې حصاره شوه نغمه
له سينې مې بهر نه شوله لمبه
نه مې ساه كښې پاتې سوز شو د ځيګر
او نه لطف په قرآن كښې د سحر

چي په زړه کښې ځايېداى نه شي نغمه
نو تر کومه به بندي وي په سينه
ورته ښايي فضا ارته بې کرانه
ورته ښايي په وسعت نهه آسمانه
آه دا درد چي مي پر ځان دى او پر تن
ستا نظر کښې دي دارو د دې دردمن
دا کمزورى زړه مي نه مني دارو
تراخه زهر او بدخونده او بدبو
دا بيمار به په دې غم پروت وي تر څو؟
د ماشوم غوندي پټېږي له دارو
په شکرو يې تراخه زهر غولوم
حکيمان مي په ځان پوري خندوم
بصيري* غوندي له تا غواړم شفا
چي مي تېره وړځ په بېرته راشي بيا
ته په ډېرو ګنهګارو مهربان يې
په خطا بخښنو کښې خوږ د مور په شان يې
يم د شپې د پرستار سره اخته

* بصيري[رح]: د قصيده برده مصنف، دا قصيده د حضورρ په نعت کښې ده، روايت دى: چي بصيري[رح] دا قصيده په بارګاه نبويρ کښې قبوله شوه او هغه له فالج نه جوړ شو

په غوږو خپلو مي بله کړه ډیوه
اې چي ستا وجود دنیا لره سپرلې
له ما پټې مه ساته خپلې جلوې
"ته خبر یې چي بدن خوږ دی په جان
او جان خوږ دی په شغلو د خوږ جانان"

((رومي))

چي د غیرالله نه ونه کړم امید
یا مي کړه توره تېره او یا کلید
زما فکر تېز د دین په کار پوهیږي
خو پر مځکه مي کردار نه زرغونیږي
زما تېر نور تېره کړه چي زما
د فرهاد نه زیات محنت دی او بلا
زه مومن یم او له ځانه کافر نه یم
یو څرخ راکړه چي بدذات بدګوهر نه یم
د ټول عمر کر مي هیڅ ونه خاته
خو یو څیز راسره شته دی نوم یې زړه
سنبال پټ یې ګرځومه له جهان
چي د تا د اس د پل لري نشان
یو غلام ته چي هیڅ نه غواړي دنیا

ژوندون مرګ دی بې حضوره د مولا
اې چې ګُرد دي کړو د زړه په سوز عرب
دا غلام په خپل حضور کښې کړه طلب
یو غلام لکه لاله داغ پر ځیګر
خپل غلام یې هم له غمه ناخبر
یو بنده تشه ژړا لکه د نی
سوی روح یې نغمې وایې پې به پې
لکه نیم سوی لرګی په بیابان
زه لا سوځمه او تېر شولو کاروان
پر دې لویه دی خور وره صحرا
خدای خبر چې بل کاروان شي را پیدا
روح مي تن کښې له فراقه په ژړا دی
های دا زه، او وایې دا زه، فریاد زما دی

%%%

## دافغانستان دځوورځوسیل

بسم الله الرحمٰن الرحیم

نادرشاه❖ پښتون بادشاه درویش صفت
وریده د ده پر ګور د خدای رحمت
د ملت کار یې محکم کړو په تدبیر
د خدای دین یې و ساتلو په شمشیر
په لمانځه کښې ویلې زړه لکه بوذرτ
او په جن‌ګ کښې یې ګزار ماتوي غر
د صدیقτ دور یې تازه شوه له جماله
د فاروقτ دور یې تازه شو له جلاله
د دین غم یې پر زړه داغ لکه لاله
د مشرق د توري شپې بله ډیوه
په نظر کښې یې مستي او ژوند د ذوق
او د روح جوهر یې سوی او جذب د شوق
شاهانه توره درویش غوندي نګاه
دوه ګوهره له محیطِ لا اله
شاهي فقر واردات د مصطفٰیρ دي
جلوې دواړه د یو ذات د مصطفٰیρ دي
دواړه مومي د مومن ځنې وجود
یو قیام د مسلمان دی بل سجود

---

❖ خطاب اعلي حضرت شهید نادرشاه ته.

فقر، سوز او درد و داغ دی او آرزو
فقر مومي په سرو وینو کښې آبرو
آفرین په فقیرۍ شه د نادر
فقر يې ځان په وينو سور کړلو اخر
د صبا باده! قاصده تېز رفتاره
د مرقد طواف يې رو کړه په قراره
شاه ویده دی پښه نیولې ګرځه رو
په مزه پرانېزه غوږ-ې د غوږو
له حضور يې دا فرمان راغلو تر ما
زما خاورو ته يې ورکړه نوې سا
"وسو موږه په ګرمۍ ستا د آواز
خوش قسمته دي چي پوی دي ستا په راز
ستا له غمه دی ملت زموږ آشنا
موږ خبر یو دا نوا ده له کوم خوا
اې زموږ د وریځ غېږ کښې لکه برق
منور دی نن دي تا په رڼا شرق
یو لحظه زموږه غرونه هم رڼا کړه
زړې میني ته بیا تب و تاب عطا کړه
ځو په قید يې په بندونو د بلا

ته کلیم يې په لار راشه د سینا"
طې مي کړلو باغ و راغ د دشت و در
لکه باد تېر شوم له غر له او له کمر
خیبر نه دی د ځلمو نه ناآشنا
په زرګي کښې يې قيصې دي هزارها
کومي لاري داسي تاؤ را تاؤ ښکارېږي
چې نظر يې په تاوونو کښې ورکېږي
په لمن کښې يې شینکی نه زرغونېږي
رن-ګ و بوی يې له زرګي نه را ټوکېږي
د دې مځکې زرکان دي شاهين مزاج
د زمرو نه يې هوسۍ اخلي خراج
په فضا کښې يې تېرې پنجې بازان
چې رپېږي يې له وېري نه پړانګان
لیکن ټول بې مرکزۍ کړلو تباه
بې نظامه نا تمامه نیمه ساه
د بازانو يې طاقت نشته د پر
د تنزرو نه هم ټيټ ساتي وزر
مړ- مړ قوم دی سوز يې نشته د ژوندو
بې نصیبه يې ژوندون له حادثو

يو به پروت وي په سجده بل په قيام
ټول روزګار يې لکه لمونځ وي بې امام
ريز مريز يې کړه په خپل کاڼي مينا
آه دا نن يې بې خبره له صبا

%%%

# د سرحد قامونو ته خطاب

اې له ځانه پټه، ځان ووينه بيا
په اسلام کښې دا پرده ده ناروا
راز د دين د مصطفیٰρ خبر يې څه؟
باچهي ده دا خپل ځان څرګند ليده
څۀ دی دين؟ د ځان له رازه خبرېدل
مرګ دی بې له ځان ليدو ژوند تېرول
کوم مومن بنده چې ويني خپل ځان
خپل ځان چوڼ کړي له همه واړه جهان
په ضمير د کايناتو دی آګاه دی
تېره تيغ د لا موجوده الا الله دی
شور يې خور دی د مکان تر لا مکانه
ورک د ده ويړتيا کښې نهه واړه جهانه

د ده زړه راز د رازونو د مولا دی
حیف چې دی له خپله ځانه ناآشنا دی
دا بنده د حق وارث د انبیاء
ځائېدای نه شي د بل چا په دنیا
چې پیدا کړي ځان دپاره بل جهان
زوړ جهان کړي لت په لت ویجاړ ویران
ژوندی کس له غیر حقه لا پروا وي
او خودي یې د وجود بله رڼا وي
پښې یې کلکې وي په جن-ګ د خیر و شر
توره یې ذکر وي او فکر یې سپر
د خپل زړه ځنې یې څیره کړي سحر
نه سحر له لمر ختیځ راختی لمر
پاك فطرت یې بې جهته له جهات
دی حرم وي په طواف یې کاینات
شي ذرې د ده د ګرد لکه آفتاب
د لوېي یې ګواهي کوي کتاب
د ده پاك فطرت غورېږي له ملته
رڼې سترګې یې غړېږي له ملته
لږ ور ورك شه په قرآن او په خبر

او بیا خپل ځان ته په ځیر وکړه نظر
په جهان کښې آواره یې بې اسرې یې
یو وحدت دي ورك كړو سل رنګه پرې یې
شوې په بند د غیرالله دي ښې بندي
دا غوی مي سوی داغ ستا د تندي
د خپل مشره له پټ مکره ساته ځان
چي برباد نه کړې ښتون روح د افغان
د مردانِ حق په اور دي سوځومه
یو نکته د پیرِ روم درته ښایمه
"رزق له حقه غواړه، مه له زید و عمر
او نشه له حقه، نه له بنګ و خمر
خاوره مه پیره، مه خوره، مه لټوه
چي ځوك خاوره خوري تل وي زېړه ګونه
زړه تلاش کړه تل ځلمی اوسه او ځوان
په رڼا یې سور مخ ګرځه ارغوان
بنده اوسه لکه اس پر مځکه ځه
مه د نورو په اوږو شه جنازه"
ګیله مه کړه له ګردشه د آسمان
ګېر چاپېر ګرځه له لمره د خپل ځان

ځان له رزقه او له شوقه کړه خبر
تا ذره يې؟ پاځه ښکار کړه سپوږمۍ لمر
د موجودې دنيا وکړه اندازه
په جهان پورته د ځان کړه آوازه
د دنيا ساز و سامان دی له وحدته
او ژوندون په دې جهان دی له وحدته
تېر شه ته د زاړه رن‑ګ او زاړه بو
پاکه ووينځه له زړۀ زړه آرزو
نه ارزيږي زوړ سامان په دوه اوربشې
نوی نقش د آرزو جوړ کړه چې ښه شې
د ژوندون بنياد آرزو بنياد آرزو
ښيي تاته دي تا ځان د تا آرزو
آرزو سترګې غوږ او عقل تېزوي
آرزو خاورو ته لاله راټو کوي
د آرزو تخم چې زړه کښې نه کري
لکه لوټه ځانه په پښو کښې د لوي
آرزو پنګه د سلطان او د امير
آرزو جام جهان بين دی د فقير
آرزو جوړ له خاورو ختو بنيادم کړي

آرزو موږه د خپل ځان سره محرم کړي
د دې خاوري نه کړي پورته شراره
او ذره کړي د آسمان غوندي خوره
د آذر فرزند کعبه کړله تعمیر
په نظر باندي يې خاوري کړي اکسیر
ته خودي خپله په خپل ځان کښې تعمیر کړه
او دا خپلې موټې خاورې دي اکسیر کړه

%%%

# مسافر د کابل ښار ته راځي او د اعلیٰ حضرت شهید په خدمت کښې حاضرېږي

د کابل ښهر، رنګین جنت شان
چي انګور يې څښوي آبِ حیات
د صائب❖ سترګې يې تورې په رنجو
تل آباد اوسه روښان په پلوشو
د لیدو يې دي د شپې سمن رازونه
د شینکو په فرش يې رغړي سحرونه

---

❖ مرزا صاحب د کابل په صفت کښې ویلي دي:
خوشا وقتي که چشم از سوادش سرمه چین گردد

ښکلی ملك، ښایسته وطن، پاك مرز د بوم
باد یې ښه دی له هوا د شام او روم
خل-ك وهي اوبه یې، خاورې یې پرقیږي
په هوا یې مړې- مړې خاوري ژوندی کیږي
نه ځائیږي حرف و صورت کښې یې اسرار
ډېر غرونه یې ویده دي په کهسار
اوسېدونکي یې موړ ستړګي خوش ګوهر
لکه توره له خپل زوره ناخبر
سلطاني محل چي نوم یې دل کشا دی
او کتونکو ته یې د لارې ګرد کېمیا دی
دې اوچت محل کښې ومې لید باچا
شو باچا ته مخامخ دردمند ګدا
په اخلاقو یې ګټلی ملك د زړونو
بې پرواه د باچهۍ له دستورونو
په دربار کښې زه د داسي لوی باچا
په دربار کښې د عمرؓ یو بېنوا
زړه مي یې ویلي د خبرو له ګرمۍ
لاس مي یې ښکل کړلو په ډېره عاجزۍ
یو باچا ساده لباس په ژبه نرم

په کار سخت ؤ په خوی پوست او په جوش ګرم
صدق اخلاص یې له کتو څرګندېدو
دین دولت یې په وجود مضبوطېدو
یو خاکي له فرشتو زیات په پاکئ
هم خبر له فقیرئ هم له شاهئ
په نظر کښې یې روزګار د شرق و غرب
حکمتونه یې رازدار د شرق او غرب
یو باچا لکه حکیم پوی په حکمت
خبردار په مد و جزر د ملت
د معنیٰ له مخه یې لرې کړې پردې
راڅرګندې یې کړې د ملك د دین نکتې
وې په هغه اور چې ستا په زړه کښې دی بل
تا ملګری او عزیز ګڼمه خپل
چې اثر یې وي د میني په وجود
په نظر کښې مي هاشم دی او محمود
په خدمت کښې مي د دې لوی مسلمان
د تحفې په طریقه پیش کړو قرآن
ما وې د ا د اهلِ حقو سرمایه ده
چې یې زړه کښې د ژوند ټوله طریقه ده

انتها ده دا د هرې ابتدا
حیدرؓ شو د دې په زور خیبر کشا
د دې ګفت نشې پې وینه کښې خورې شوې
اوښکې سترګې نه باران قطرې۔ قطرې شوې
وې نادر په دې دنیا کښې بېچاره ؤ
د وطن او دین له غمه آواره ؤ
غر بېدیا مي ناآشنا له اضطرابه
بې خبره له دې غمه بې حسابه
ډېرې چیغې مي ملګرې د مرغو کړې
ډېرې اوښکې مي ملګرې د چینو کړې
بې قرآنه مي بل نه ؤ غم ګسار
د ده زور ؤ چې هر در شو راته لار
دې خبرو د سلطان عالیجاه
نوې۔ نوې جذبه راکړه نوې ساه
مازیګر شو آواز وشو الصلٰوة
هغه لمونځ چې مومن پاک کړي له جهات
انتها د عاشق څه وي؟ سوی زړه
ده پسې مي وتړه نیت د لمانځه
راز د هغه اودریدو هغه سجدو

د هر چا په مخ کښې نه دی د واېو

%%%

# د شهنشاه بابر "خلدآشياني" پر مزار

راشه د مغرب ساز دی پرېوتی له نغمو
نشته په پردو کښې يې هيڅ بې له اسويلو
زر ځله سنګار کړو زمانې زاړه بتان
ما حرم پرې نه شو چې ډېر پوخ ؤ په ارو*
با د عثمانيانو د ملت جنډې شوې پورته
ستا په کور څه ووايم څه غم راپرېوتو
دا خوش نصيبي وه چې ستا خاورې دلته راغلې
دا مځکه جدا ده له جادو د فيرنګو
زر ځله کابل په ختــه ښه دی له ډيلي نه
هغه بوډۍ ناوې ده د سل زره ځلمو
خپلې سرې۔ سرې اوښکې ساتم سترګو کښې دننه
زه فقير دا يو خدايې دولت لرم د سرو
ګرچه د حرم پير وظيفه د لا ا ٰله کړي

---

* اره معنٰی بنیاد.

څه شو ها نظر چې له فولادو به وتو

%%%

# د غزني سفر او د حکیم سنايي رح مزار

د شهید سلطان له مهره له نظر
شپه او ورځ مې شپه او ورځ ده د اختر
د مشرق نکته شناس هندي فقیر
او مېلمه د شهنشاه کیوان سریر
تر هغې چې له شاهي ښاره روان شوم
په سفر کښې د حضرت نه زیات شادان شوم
ټوکولي یې لاله وو په بېدیا
زړه مې پرانست هغه باد ته چې پخوا
آه غزني هغه د علم و فن ورشو
مرغزار د ښه مردانو پخوانو
ښکلې ناوې د محمود د اقتدار
چې طوسي حکیم کوو ورته سنګار
پروت یې خاورو کښې حکیمِ غزنوي
په نغمو یې د ځوانانو زړه قوي

پوه په پټو او خاوند د مرتبو
چي په ذکر يې رومي<sup></sup> نه مړېدو
زه "څرګند" نه، دې د "پټ" نه په سرور دی
او د دواړو سرمايه ذوقِ حضور دی
د ايمان له مخه ده لر کړو نقاب
او زما فکر تقدير کړو بې حجاب
دواړه اخلو له قرآنه يو سبق
دی د حق بيان کړي زه د مردِ حق
تېر مې کړو په قبر درود و سوز و سوی
چي مي وګټلو يو سوړ اسويلی
ما وې اې چي ته پټ راز وينې د ځان
تاته ښکاري دا جهان هغه جهان
زما عصر ورك مين په آب و ګل دی
اهلِ حقو ته پيښ شوې لوی مشکل دی
فيرنګيانو په مومن وکړې کانې
په حرم کښې را څرګندې شوې فتنې
چي نظر ادب له زړه وا نه خستو
سترګې يوړې د فيرنګ مستو جلوو
اې په پټو پوهه! اې امام د عارفانو

ستا په فيض پاخه شو خام د عارفانو
را څرګند کړه پټ د غيبو په پردو
ګوندي لاړې اوبه راشي تر چينو

%%%

# د حکیم سنايي رح روح د جنت نه ځواب ورکوي

پوه په راز د خیر و شر کړم فقیرۍ
زه ژوندی صاحب نظر کړم فقیرۍ
فقیري چې واخلي لاره د مولا
د خودۍ په رڼا ویني الله
لټوي دننه ځان کښې لا ا لٰه
وايي ان د توري لاندي لا ا لٰه
د روح غم کړه، نه د تن لکه زنان
د ځوانانو غوندي غورزه پر میدان
سلطنت د خاورو خټو د دنیا
یوه څاڅکی د زړه وینه يې بها
په دنیا کښې مومنان چې ځان ته وايي
په خوراک او په خوب نه، په مینه پايي
دا مستي او مینه پوهه يې، له چا ده؟
پلوشه یوه د لمر د مصطفیٰ ﷺ ده
ته ژوندی يې څو دا سوز دي ځان ساتي
دغه مینه به دي تا ایمان ساتي
د دې خاورې له رازونو ځان خبر کړه

په اكسير د خپل زړګي باندي يې زر كړه
زړه د دين نه سرچشمه د هر طاقت شي
دين موندای په معجزاتو د صحبت شي
كتابونو كښې دين چرته؟ بې خبره!
كتابونو كښې حكمت، دين له نظره
بوعلي پوهيږي ښه په آب و ګل
بې خبره دی له درده او له دل
نېش او نوش پرېږده د بوعلي سينا
له زړه مندو لټوه د زړه دوا
مصطفٰیρ دی لوی درياب لوړې څپې
پاڅه! وتره دا سيند دي په ولې
تر مودو يې په ساحل و ګرځېدلې
تا څپيږي د څپو و نه خوړلې
يو لحظه ځان دې درياب ته ورګزار كړه
مړ بدن دي له ورك روحه په كنار كړه
بې له حق په بله لار نه شې پويانه
نه له عام رحمت مايوس شې مسلمانه!
پرده پرېږده را ښكاره دي كړه خپل ځان
چي دي مځكه له سجدو شي په لړزان

ما بېتابه فطرت ولید یو زمان
د اسباب د هنګامې روحِ روان
ۇ نظر یې په ښه بد د دې دنیا
او تر سترګو یې دي واره پټ پنا
لاس یې ۇ خاورو اوبو سره اخته
دغه یو ځای ۇ هغه رېزه۔ رېزه
ما وې څوك تلاش کوې؟ څه لټوې؟
په دې خاورو او اوبو کښې څه کوې؟
وې د پاك مولا په حکم په کرم
له دې خاورو جوړوم نوی آدم
موټی خاوره یې سل رنګه ازمایله
تاودوله، کموله، زیاتوله
آخر آب و رن-ګ یې ورکړو د لاله
او په زړه کښې یې ورته کښېښو د لا ا لٰه
صبر وکړه وبه وینې بل بهار
زیات رنګین له زوړ سپرلي او خوشګوار
هر ساعت دا تدبیرونه کړي رقیب
چې ته خپل سپرلي نه وانخلې نصیب
ځې زما د ګل په څانګو کښې نظر

ځو غوټۍ مي دي ليدلې په سفر
په بېديا په غرونو غارو په ميرو
پاتې کيږي نه لاله له ټوکېدو
د تلاش خاوند، مالك د مرتبې
اورېدای شي دمرېي پټې نغمې

# د سلطان محمود رح پرمزار

له زړګي بې واکه خيزي واويلا
هغه شهر آه! چي دلته ؤ پخوا
هغه ملك او محلونه ويرانې دي
هغه شان و شوکت او رعب افسانې دي
يو ګنبد چي په طواف کښې يې آسمان دی
دغه قبر د محمود غازي سلطان دی
هغه شاه چي به ماشوم پاکه کړه خوله
نو اول به يې نامه دا اخسته
په دنيا د ده جنډه د خدای نشان ❖

---

❖ د دې بيت ژباړه نه ده شوې:
زير ګردون آيت الله رائتش :: قدسيان قرآن سدا برتربتش

پر مزار يې فرشتې وايي قرآن
د خيالونو شوخۍ يوورېمه له ځانه
خبر نه شومه له ځانه له جهانه
له سينې مي را څرګند شو هغه لمر
چې تول پټ يې له رڼا شي را بهر
چې جلال ته يې کړي رکوع مهر ګردون
پلوشې يې را څرګند کاندي پرون
شوم آزاد د سترګو غوړو له دنيا
چې مي وليد نن، پرون غونډي صفا
غزني ښار جنت د رن-ګ او د بويونو
زمزمې يې د چينو په محلونو
محلونه لوړ اوچت قطارـ قطار
آسمانونه يې له څوکو همکنار
په مجلس کښې مي طوسي وليد موجود
او په جن-ګ کښې مي لښکرې د محمود
روح مي سيل کړو د رازونو د دنيا
چې را وينې کړم د يو مست ملنګ وينا
هغه تول سوز و سرود د تمنا ؤ
په دنيا لکه د مستو بې پروا ؤ

ويې کړلې څو د اوښکو مرغلرې
او له خدای سره يې وکړې څو خبرې
زه چې نه وم بې خبره له دې راز
ځکه وسوم په ګرمۍ د دې آواز

%%%

# د لېوني مناجات د غزني په کنډروکښې

لاله يو پلوشه غوارې آفتاب
وي په څانګه کښې په څومره پيچ و تاب
چې سپرلی يې را ښکاره کړي وايي بس
په وينا دي تا ژوندون دی يو نفس
دواړه راغلو يو او بل ته ساز د برګ
خبر نه يمه چې ژوند ښه دی که مرګ ؟
مسلسل جن-ګ دی د تريخ او خوږ ژوندون
د نن رن-ګ روڼ کړی وينې د پرون
له دې مکره او له دامه الامان
له سحر او له ماښامه الامان
اې مولا! د روح او جسم مصوره!

تا ته کړي دا لیونی یوه خبره
فتنې وینو موږ په دې دیرِ کهن
فتنې وینو په خلوت په انجمن
دا عالم ستا له تقدیره دی پیدا
او که نه څوك بل خالق لري جدا
په ظاهر صلح صفا په باطن جن-ګ
د زړه منو ښیښنه سل ټوټې په سنګ
رښتیا مینه او اخلاص نه دي باقي
پیالې ماته شوه او لاړلو ساقي
ته نظر لرې په سور مخ د فیرنګ
نو آدم که هم د دوی سحر بدرنګ
له چا اخلي ربط او ضبط دا کاینات؟
اې شهیده! په ادا د لات، منات
مردِ حق هغه بنده روشن نفس
ستا نائب په دنیا دغه یو ؤ بس
اوس قیدي د مال او ښځې او اولاد
که کېدای شي دا بتان یې کړه برباد
دا مومن اوس عبادت کوي د چا؟
چې یوه هنګامه نه لري په خوا

سینه بې له سوز و سوي او روح بې جوشه
اسرافیل دی او شپېلۍ یې ده خاموشه
نه یې زره محکم مضبوط دی نه یې ځان
نه یې مال د قبلېدو دی پر جهان
د ژوندون په کشمکش کښې بې ثبات
په لستوڼي کښې یې پټ لات و منات
د کافرو په شان مرګ کښې هلاک
اور یې دغسې ارزان دی لکه خاک
له دې خاورو یې لمبه کړه را پیدا
هغه زور تلاش او مینه ورکړه بیا
ورته بیا زړې جذبې ورکړه د زړه
لېونتوب ورکړه خپې ورکړه د زړه
په وجود باندې یې کلک د مشرق ځان کړه
د صبا سحر یې پورته له ګرېوان کړه
کړه توټې بحرِ احمر یې په همسا
کوه قاف یې کړه له رعبه په لړزا

## قندهار او د خرقې مبارکې زیارت

قندهار ښکلی وطن رنګین سواد
د هر ځای خاوره يې خاوره د مراد
هواګانې خوشبويانې او چينې
ځلنده لکه پاره لکه آينې
له لاله ؤ ډک د غرونو خلوتونه
وو اورونه په اورونو يخ دننه
د دې ښار کوڅې زما د يار کوڅې
اې ساروانه! تړه دې خوا کجاوې
بيا به ستا يم په نغمو ياران د نجد
چې ناقه هم په مستۍ شي او په وجد

# غزل

را روان شوم ميکدې نه بې ګردشه د صهبا مست
په منزل کښې د "لا" پروت يم په نشه د "الا الله" مست

په دې پوه يم چې نظر يې د هر کس لوښي ته ګوري
زه زما نيازبين ساقي کړم په نازونو په ادا مست

دغه وخت دی که پرانیځم مي خانه دورمي ح بېرته
د حرم بزرګان وینم په میدان د کلیسا مست

دغه کار د حکیم نه دی کړه لمن د کلیم υ تینګه
نه سل کسه د ساحل مست او نه یو کس د دریا مست

زړه مي یوورلو چمن ته د ګلشن هوا کړو مړاوی
مري په باغ او په چمن کښې دا لاله وي په صحرا مست

په خوږو- خوږو نغمو یې د حرم رازونه اووې
کافرۍ مي پرون ولید په وادي کښې د بطحا مست

دا سینا ده که فاران دی خدایه! دا لا کوم مقام دی؟
هر بخری مي د خاورې یو نظر په تماشا مست

# د خرقې شریفې زیارت

ما خرقه د "برزخ لا یبغیان"*
په نکته کښې ولیده د "خرقتان"✡

---

* برزخ لا یبغیان، (قرآن)

د ده دین د ده آئین تفسیر د هرڅه
آ تندي باندي يې ليك تقدير د هرڅه
عقل شو د ده نه صاحبِ اسرار
ورکړه ده میني ته تيغِ جوهر دار
دی د شوق د کاروانونو سر منزل
موږ د خاورو یو څو موټي او دی دل
دي د ده څرګندېدل زموږ اسرا☼
د ده زړه زموږه مسجدِ اقصیٰ
له قمیصه يې را خوره شوله خوشبو
موږ ته يې راکړله نعره د الله هو
څه مي وکړل په زړه شوق بې پروا
دې شرابو څه۔ څه وکړل په مینا
د سینې دننه مست په ګډا سر شي
چي د سترګو د نظر په لار بهر شي
وې يې زه یم جبریل نور د الله
چړې دی داسي لیدلی نه ؤ ما
ژاړي خاندي د رومي رح په شعر دی

✡ خرقتان الفقر والجهاد. (حدیث)
☼ تلمیح د آیتِ قرآني.

خدایه څوك دی دا هوښیار دا لیونی
په حرم کښې يې د مستۍ خبرې کړې
د شرابو د ساقي د پیمانې
ما وې بس کړه دا بېباکه ګفتګو
چپ شه دا ځای دی د غلي کښېنستو
ما را لوی کړلې په خپلو وینو سرو
کړې آشنا مي د سحر له اسویلو
ځان په دې نکته خبر کړه نکته جو
مینه غوارې په خپل ځان باندې قابو
وې چې عقل، هوښیارې آزار د زړه دی
او مستي ځان هېرول روزګار د زړه دی
یو څو چیغې يې کړې او پرېوت په سجده
بیا دی نه ؤ د آواز لمبه يې وه

%%%

# د احمد شاه بابا مؤسس ملت افغانیه پر مزار

د هغې روشن ضمیر باچا تربت
چې له زړه يې یو ملت شو را اوچت

سپین گنبد يې خپل حرم گڼه آسمان
لمر، سپوږمۍ يې له فروغه دي روښان
د فاتح[✡] غوندي امير دی صف شکن
لره حکم په اقليم هم د سخن
د تلاش په خوند يې پورته کړو ملت
فرشتې يې درود وايي پر تربت
په آزاد لاس د سخي په فراغ زړه
ډير ملکونه يې اخسته او پرېښوده
هم د دې تورزن عارف او دی دانا
وکړه ما وته پاك روح يې دا وينا
وې خبر يم په مقام باندي د تا
ستا نغمه ده دې خاورينو ته کيميا
کاڼو خښتو خپل کړو زړه ستا له وينا
په خبرو دي که روڼ د زړه سينا
زما خوا کښې اې آشنا د يار د لار
لږ خو کښېنه چي وړمه لرې د يار
ښه دې هغه چي خودي يې کړه آئينه
دې آينه کښې يې دنيا وپېژنده

✡ فاتح سلطان محمد فاتح، فاتح قسطنطنيه.

دا آسمان زوړ شو دا مځکه شوه زړه
میاشت د غر کم نظری کړله رنده
اوس په کار ده یوه ګرمه هنګامه
چي زوړ رن-ګ او تللی رن-ګ شي را ښکاره
اسرافیل شي ورته یو مومن بنده
تار په تار کړي دا دنیا خوره وره
اې چي خدای درکړی زړه دی او نظر
ته د ملك د دین له رازه یې خبر
ربنتیا ووایه فرزند ته د نادر
په ظاهر ته خپل باطن کړه دا ظاهر

%%%

# دا اسلام باچا اعلیٰ حضرت ظاهر شاه ته خطاب

## ((ایده الله تعالیٰ بنصره))

په بدن دي تا پوره شاهي قبا ده
د تا سیوری زموږ خاورې ته کیمیا ده
باچهي ستا په وجود ځان سنجوي

ملك و مال د تا جلال حصاروي
اې د فتح و ظفر پنګې ستا له ذاته
دبدبه د احمدشاه د تخت شوه زياته
سينه بې دي تا له مينې ويرانه شه
له زړګي او له اميده دېوانه شه
دا ابدار خنجر چي دی د تا تر ملا
نيمه شپه يې سحر کيږي په رڼا
زه پوهيږمه خنجر دی د نادر
زه څه ووايم باطن يې دی ظاهر
دا څو ټکي دي زما که قبلوئ
يو فقير وايي رازونه د شاهئ
اې! چي ستا نظر تېره دی له شاهينه
دغه خدای درکړی ملك دي لږ ووينه
دا چي وينو دا د چا د تقدير کار دی؟
هغه شی څه دی؟ چي نشته او په چار دی
ورځ او شپه آئينه زموږه د تدبير ده
ورځ او شپه آئينه زموږه د تقدير ده
درته وايم اې ځلميه! جفاکشه!
صبا څه دی؟ د پرون او نن د نسه

کوم خوش بخته چي د نن مالك كړو ځان
د هغه نه چورلندی چورلي آسمان
د جهان ښایست د ده د مخ اوبه
نن له ده، پرون له ده، صبا له ده
مردِ حق د شپې او ورځې سرمایه
دی د خپل تقدیر پخپله ستاره
نظر من بنده دی پير د امتونو
په نظر کښې يې تقدير د امتونو
تر تېرې توري تېره د ده نظر دی
موږه ټول ښکار يو او دی رانه بهر دی
له پوخ فکره يې رپيږي حادثې
لا په خته کښې پرتې دي زمانې
لکه پلار، اهلِ هنره خوښوه
په رښتیا صاحب نظره خوښوه
د هغه غوندي هوشیار او بیدار اوسه
سخت کوششه، باهمته، کرار اوسه
کراري پیژنې څنګه ده څه وي؟
يو مقام د مقامونو د علي^τ^
امتونه په دې دهر بې ثبات

تېروې بې کرارۍ نه شي حیات
ګوره څه تېر شو په سر د عثمانیانو
وینې زړونه په فرېب د فیرنګیانو
چې يې وه د کراري نه نصیبه
بیا یې پورته په دنیا کړله جنډه
هندي ولې میدان پرېښود په خوارۍ
په همت کښې نه ؤ بوی د کرارۍ
شولې داسي خاورې یخي يې اومړې
چې تاودې نه کړلې بیا زما نارې
ستا په وینه کښې پرته ده نادري
سروري او دلبري او قاهري
اې د هر ځوان او بوډا د سترګو توره!
د هاشم او د محمود کار ته وګوره
هم هغه ځوان* چې پر غر او په بیدیا
حق د ده له توري پورته کړه صدا
په شپو۔ شپو په ورځو۔ ورځو ترېپداى شي
یو دنیا نوې دنیا پیدا کواى شي
سل جهانه را مونداى شي په قرآن

---

* اعلی حضرت شاه ولي خان

آیتونو کښې يې وسوځوه ځان
بیا پښتون ته د دې سوي ورکړه اثر
مازیګر ته يې ور وبخښه سحر
یو ملت ورك په خوره دنیا ښکاريږي
په تندي کښې يې څه بل څه را ښکاريږي
چې په زړه کښې مې ۀ درد او غم او سوی
له قسمته د ده زه خبر کړم خدای
کاروبار مې يې تللی دی کره
پټ قسمت مې يې لیدلی دی ښکاره
دی ژوندی په الله هو، مردِ میدان
او په پښو کښې یو څلور مخه جهان
چې بې خدايه څوك په بل زړه نه تړي
په ښیښه باندي کلك کاڼي ماتوي
نه ځايیږي پر جهان د څه او څو
دا سیند نه دی تهمتي د کنارو
چې له خپل مخه راپورته کړي حجاب
دی حساب دی او ثواب دی او عذاب
سر سامان زموږ کتاب دی او حکمت
په دې دوو طاقتو ټینګ اوسي ملت

او د ذوق او شوق دنيا را خپلوي
بيا د لاندي باندي ملك قبضه کوي
دغه دواړه نوازش د ذوالجلالΨ
يو جمال د مومنانو بل جلال
حکمت نه دی فيرنګي سره پيوند
اصل يې څه دی د ايجاد مزه او خوند
که خيال وکړې مسلمان کره پيدا دی
دا پرېوتی ګوهر اصل کښې زما دی
چې عربو پرې وزرې کړې خورې
د حکمت علم يې کښېښودی ارې
تخم دې صحرا نشينو وکرلو
او حاصل ترې فيرنګيانو واخستلو
دا زموږه د اسلافو شاپېرۍ ده
بيا يې خپله کړه که اوس درنه پردۍ ده
خو تهذيبِ لاديني نه ځه پر څنګ
د دې وي د اهلِ حقه سره جن-ګ
رنګارنګ فتنې خورې کړي دا شيطان
په حرم ورننه باسي بيا بتان
په جادو د دې شي سترګې نابينا

روح ترې مري له ډېري تندي په ژړا
وي له زړه د بېتابۍ لذت او خوند
بلکې پرې کړي د بدن او زړه پیوند
زور غلګۍ تل په څرګنده کوي غلا
لاله ژاړي چي تور داغ څه شو زما؟
حق دي برخه کړي د تا ذوقِ حضور
بیا به ووایم ویلي په زبور
"مړه کېدل ژوندي کېدل دا د نفس
دي یو څو اعبارات واړه او بس
کوڼ د نوا په معنیٰ نه پوهیږي
په خوند د صوت و صدا نه پوهیږي
ړوند مست خوشحاله وي په چنګ او سرود
خوشي رنګونو ته د مړي په دود
روح وي د حق سره زنده پائنده
کني نو ده ته مړ هغه ته زنده
چي "حي لا یموت" دی هغه حق دی
ژوندون د حق سره ژوندون مطلق دی
چي ژوند بې حقه تېروي مردار دی
په دې ژوندي سړي ماتم په کار دی"

د قرآن مېوه خوره غواړې که ثبات
چې پې وينم زړه کښې زه آبِ حيات
راکوي راته پيغام د لا تَخَفُ
رسوي مې تر مقام د لا تَخَفُ
د امير باچا قوت دی لا الٰه
د فقير شان او هيبت دی لا الٰه
چې مو دواړه توري وي لا او الا
پرې مو نه شوې علامې د ماسوا
په شغلو مې لمرخاته شولو رڼا
خوش قسمته دی په عصر کښې زما
له دې تب و تابه واخله خپل تقدير
بيا به را نه شي زما غوندې فقير
ما پېيلې مرغلرې د قرآن
او د صبغة الله راز مې کړو بيان
مسلمان ته مې بخښلی دی يو غم
وچې څانګې ته مې بيا ورکړی نم
زما مينه د ژوندون لري پيغام
په شرابو مې دی روڼ د عقل جام
داسې عقل زياتوونکې نقطې چا وې؟

مسلمان ته سوې۔ سوې مصرعې چا وې؟
ژړېدم لکه شپېلۍ پر سمه غر
چې آخر له خپل مقامه شوم خبر
چې ستي شومه د شوق سبق مي زده کړو
او مړ شوی اور مي بیا بله لمبه کړو
اسویلي يې سوي راکړو د سحر
يو وابنه ته يې قوت ورکړو د غر
په سینه کښې مي دی نور د لا ا لهٰ
په شرابو کښې سرور د لا ا لهٰ
له دې فیضه مي خیال پورته ګرځوي
او چینه مي کنارې نه قبلوي
له دې میو نه مي واخله څو پیالې
چې په شان د ویستي تورې پړق وهې

پای